# اسرار الافاغنه

1580ء

لیکونکی

حسین زوی د صابر زوی د خضر

اردو ترجمه او پېژندګلو

سعود الحسن خان روهیله

پښتو ترجمه

ډاکټر محمد زبیر حسرت

خوروونکي

د ادبي دوستانو مرکه مردان

پښتونخوا

2014ء

ضابطه

لیکونکے
حسبن زوے دَ صابر زوے دَ حضر
اردو ترجمه او پېژندګلو
سعودالحسن خان روهیله
پښتو ترجمه
ډاکټر محمد زبیر حسرت
کمپوزنګ اینډ ډیزائننګ
قاري ادریس خان/ حیات روغانے
خوروونکي
د ادبي دوستانو مرکه، مردان
وړومبے چاپ اکتوبر 2014ء
دِ چاپ ځاے
عامر پرنټرز اینډ پبلشرز، جنګي محله، پېښور
قیمت 50 روپۍ

# انتساب

د سعود الحسن روهیله په نوم
چې دا تاریخي دستاویز یې د پښتنو د پاره
محفوظ کړے دے




## سېنګار

## پېژندګلو

دَ پښتنو افغانانو پهٔ حسب نسب پهٔ مينځنۍ دوره کښې ځينې کتابونه ليکلي شوي دي. دهٔ کښې زيات مشهور "مخزن افغاني" (1662ء) دے چې دَ پښتنو دَ نيکونو او دَ دوي دَ قبائيلي وېش پهٔ حقله پکښې تفصيلي بحث شوے دے. دې پسې دَ حافظ رحمت خان "خلاصةُ الانساب" (1761ء) دے چې دَ مخزن افغاني نه تقريباً 160 کاله پس ليکلے شوے دے. پهٔ مخزن اکثر دا اعتراض کېږي چې هغه يو درباري مؤرخ ليکلے دے چې دَ مغلو دَ طنز نه دَ بچ کېدو پهٔ غرض دَ افغانانو لپاره دَ بني اسرائيل کېدو نظريه وړاندې کوي. نور کوم کتابونه چې پهٔ دغه دور کښې ليکلي شوي دي مثلاً "تاريخِ شېر شاهي" او "واقعات مشتاقي" يعني "تاريخ داودي". پهٔ دهٔ کښې دَ افغانانو دَ بني اسرائيل کېدو متعلق هېڅ خبره نشته. دَ مخزن نه وړاندې يو بل تصنيف "تواريخِ دولت شېر شاهي" (1548ء) کښې هم افغانانو ته بني اسرائيل وئيلي شوي دي. دا دَ 1548ء تصنيف دے چې دَ شېر شاه يو امير ته منسوب دے.

دَ شیخ قاسم دَ پلار شیخ قدم دَ ترۀ زوي شیخ اکا ابن شیخ طاهر دَ همایون بادشاه هم عصر وۀ. دا شان شیخ قدم هم دَ همایون بادشاه معاصر ښکاري او شیخ قاسم دَ اکبر بادشاه ــ دَ مخزن یوه نسخه کښې دَ شیخ قاسم دَ ولادت کال 956 هـ/ 1549ء او دَ وفات کال 1016هـ/ 1607ء درج دے.

پۀ شیخ قاسم دَ دومره اوږد بحث نه مقصد دا دے چې دَ حسېن ابن صابر دور دَ 1550ء نه تر 1600ء تر مینځه وۀ او حسېن دا کتاب هم دې دوران کښې لیکلے دے. دَ حسېن دَ وفات پۀ حقله مونږ ته څۀ علم نشته البته مستقل سکونت یې پۀ هندوستان کښې وۀ.

دَ حسېن دا کتاب پښتو ژبه کښې وۀ او مولوي خیرالدین نومې یو سړي یې فارسۍ کښې ترجمه کړي ده چې عام هندوستانیان ترې فائده پورته کړي. دَ مولوي خیرالدین پۀ حقله هم څۀ معلومات نشته البته دومره اندازه کېږي چې هغۀ پۀ پښتو او فارسۍ دواړو ژبو پوهېدۀ او دَ "مولوي" تکے یې دَ مذهب سره دَ تړون څرګندونه کوي. شائد دَ اصل لیکونکي حسېن پۀ شان هغه هم دَ پښتنو لۀ نسله وۀ.

هنري ونسیټارټ (Henry Vansittart) چې دَ دې فارسۍ تلخیص یې انګریزۍ ته اړولے دے. پۀ 3 جون 1732ء کښې پۀ لندن کښې پیدا شوے وۀ. دَ ریډنګ سکول او ونچسټر کالج نه یې تعلیم حاصل کړے وۀ. بیا یې پۀ مېډمېنهم کښې صرف دَ 13 کالو پۀ عمر کښې دَ ایسټ انډیا کمپنۍ ملازمت کښې داخل شۀ او فوبټ سینټ ډېوډ دَ پاره لاړۀ او پۀ 1760ء کښې یې دَ فورټ ولیم دَ ګورنر پۀ حېثیت او دَ انډیا کونسل دَ صدر پۀ طور بنګال هندوستان کښې تقرري وشوه. بنګال کښې دَ میر جعفر پۀ ځاے دَ میر قاسم صوبېدار مقررول هم دَ دۀ کارنامه وه. دې دوران کښې دَ کمپنۍ او میر قاسم تعلقات خراب شول او هنري استعفي ورکړه. پۀ 1764ء کښې انګلستان ته ستون شۀ. پۀ 1769ء کښې یې هم دَ دې کمپنۍ ډائریکټر وټاکلو او هندوستان ته یې راواستولو. لۀ دې وړاندې یې حالات غیر یقیني دي. دَ

ځینو خیال دے چې هغه په 1770-1771ء کښې هندوستان دَ راتلو په وخت جهاز کښې غرق شوے دے.

(Encyclopaedia Britannica 1968,vol_22,p_ 978.

خو دَ نظر لاندې تصنیف نه پته لګي چې هغه تر 1784ء ژوندے وه ځکه چې دې کتاب کښې دَ شامل خط نه ښکاري ده بلکې تر 1784ء پورې په کلکته کښې وو. خو 1787ء کښې دَ خپل دغه لیک په رساله Asiatic Research کښې شائع کېدو نه مخکښې په حق ورسیده ځکه چې دغه وخت یې دَ هغه دَ نامې سره دَ ولیم جونز "مرحوم" ټکے استعمال کړے دے. 1770ء یا 1771ء کښې دَ هنري وفات غېر یقیني دے ځکه چې هغه دَ دې کتاب په اخره کښې حافظ رحمت خان دَ پاره "مرحوم" لیکلے دے چې په اپریل 1774ء کښې شهید شوے وه. هنري دَ علم او ادب سره مینه لرله چې ثبوت یې دَ "اسرار الافاغنه" دَ فارسۍ نه انګرېزۍ کښې ترجمه کول دي. دَ دې نه ښکاري چې هغه په فارسۍ هم ښه پوره عبور لرلو.

**دَ تصنیف، تلخیص او ترجمې زمانه:**

هنري ونسیټارټ تلخیص شوے متن انګریزۍ کښې ترجمه کړه او په 3 مارچ 1784ء کښې یې لهٔ کلکتې لندن ته ولېږه. لهٔ دې ښکاري چې انګریزي ترجمه په 1784ء کښې په کلکته کښې شوې ده. دَ دې کتاب فارسۍ کښې دَ ترجمې او تلخیص څهٔ پته نهٔ لګي. دَ هنري وېنا ده چې هغه ته دَ فارسۍ دا تلخیص څهٔ موده وړاندې په لاس ورغلے وه ځکه نو ښکاره ده چې دا تلخیص دَ هغهٔ په ایماء نهٔ دے شوے ګنې هغهٔ به دا ضرور وئیل چې دا تلخیص هغهٔ کړے دے. بل په هغه دور کښې به انګرېزانو افسرانو اردو کښې ترجمې کولې. شاید دا تلخیص مولوي خېرالدین روهیلکنډ دَ حکمران (نواب) حافظ رحمت خان (شهید) په دور کښې کړے وي ځکه چې یې لهٔ کردار ښکاره ده. چې هغوي به دَ دا قسمه کارونو ډېره حوصله افزایي

کوله۔ دا کتاب پښتو کښې کله ليکلے شوے دے، دا نۀ ده ثرګنده خو دې کښې د عادل شاه سوري د حکمرانۍ کېدو ذکر دے نو ځکه خيال دے چې دا به د هغۀ د وفات 1550ء نه وروستو ليکلے شوے وي خو د دې ليکونکے حسېن چونکې د شېخ قاسم 1549ء (پېدايش) مريد وۀ نو ځکه د شېخ قاسم تر ځوانۍ به انتظار کول وي يعنې هاغه وخت کله چې شېخ قاسم د دې قابل شي چې نور د ځان مريدان کړي او زما د اندازې مطابق دا سن 1580ء يا 1585ء پکار دے۔

## نسخه:

زما د علم مطابق د دې تصنيف اصل پښتو نسخه لا نۀ ده ترلاسه شوې۔ شايد پۀ کلکته، برټش ميوزيم (لايبريري لندن) يا بل کوم ځاے موجوده وي۔ د فارسۍ تخليص شوې نسخه يقيناً چې د ايسټ انډيا کمپنۍ افسرانو سره وه چې اوس د هغې هم پته نۀ لګي چې چرته ده؟ خو د انګرېزۍ ترجمه چې پۀ 1784ء کښې شوې وه، هغه پۀ 1787ء کښې ايشياټک سوسايټۍ نه شايع شوه او پۀ 1801ء پۀ لندن کښې د ايشاټک ريسرچز دوېم جلد کښې پۀ دوېم ځل پۀ 76-67 صفحو بيا چاپ شوه۔ دا ترجمه مې لۀ هغې کړې او اصل انګرېزي متن مې ورسره منسلک کړے دے۔

## د کتاب اهميت او خاصيت:

دا کتاب پۀ ځينو حوالو د اهميت وړ دے:

1. دا کتاب د نورو اکثرو افغان تاريخونو پۀ شان هندوستان کښې ليکلے شوے دے او دې لورې ته اشاره کوي چې پۀ پښتنو کښې د تمدن تر اثره تاريخي شعور څنګه وده مونده؟

2. دا کتاب د خپلو معاصرو افغان تاریخونو نه برعکس د فارسۍ پهٔ ځای پښتو کښې لیکلے شوے دے چې د دې خبرې اندازه ترې کېږي چې د افغانانو د حکومت د خاتمې نه پس نه هم پښتو ژبه د هغوي تر مینځه رائج وه. نور تاریخونه دربارونو سره تړلو خلقو لیکلي دي، "اسرار الافاغنه" یو عام سړي لیکلے دے چې د دې خبرې غمازي کوي چې د هندوستاني پښتنو پهٔ اولسي حلقو کښې پښتو ژبه د څو پشتو نه پس بیا هم ژوندۍ ژبه وه.

3. دې کتاب کښې ټول زور د افغانانو پهٔ نسب ورکړے شوے دے او ډېر معلومات یې زړهٔ راکښون لري، ځکه چې یو عام پښتون د اولس د خلو عام روایتونه قلم ته سپارلي او دا یې وئیلي دي چې هاغه دور کښې عام پښتون اولس کښې د خپل اصلیت او خپل نسل باره کښې څهٔ روایت وهٔ.

4. بله یوه خاص خبره چې لهٔ کتابه ښکاره ږي، هغه دا ده چې دهٔ د قیس عبدالرشید نسبت د خالد بن ولید د افغانانو د مورثِ اعلیٰ کېدو باندې زیات زور راوړے دے او قیس پکښې هم نهٔ دے نظر انداز شوے. "مخزن" (مخزن افغاني تاریخ خان جهان لودهي) کښې هم دا حوالې موندې کېږي چې ډېرې قبیلې پهٔ دې خبره زور راوړي چې مونږ د خالد لهٔ اولاده یو.

5. د افغانانو پهٔ روایت کښې چې د پښتنو وفد له د نبي کریمﷺ لهٔ خوا د عصا د عطا کېدو کومه تذکره ده، هغه پهٔ مخزن کښې نهٔ ده درج بلکې صرف پهٔ عربي تذکرو کښې ده او د اخون درویزه د کتاب (تذکرة الابرار و الاشرار ـ مترجم) نه علاوه صرف هم دې کتاب کښې ده. د دې نه پته لګي چې د لیکونکي دروه نه هند ته د راتلو ډېره موده نهٔ وه شوې او هغه پهٔ خپل ولایت کښې د رائجو روایاتو نه ښهٔ اګاه وهٔ.

6. دې کښې چې د "پټهان" تکې کومه تشریح شوې ده، هغه زیاته عقلي ده. د فرشته بیان چې (د افغانانو په پټنه کښې د ابادکارۍ له وجې پټهان شوے دے) او د مخزن بیان (چې د نبي کریمﷺ قبس له د ورکړے شوي خطاب "بطان" [اصل نسخه کښې "بتان" دے ــ مترجم] وران شوے شکل "پټان" او بیا "پټهان" شوے دے) ، مونږ ته غېر سائنسي ښکاري.
7. هنري د ترجمې شورو نبغ په نبغه د افغانانو د بني اسرائیل کېدو نه کړې ده او د فارسۍ د تلخیص د هغې حصې ترجمه یې نۀ ده کړې چې پکښې د اصل کتاب د لیکونکي او مترجم نامه ده.
8. د پښتنو په خپله په څلورو ډلو کښې د تقسیم د کومې منصوبه بندۍ بیان چې دې کښې شوے دے، لۀ هغې ځینې څرګندېږي چې د افغانانو د قومیت تشکیل د محمود غزنوي په دور کښې شوے وۀ. لۀ دې تقسیمه مونږ ته دا پته هم لګي چې د افغان قومیت بنیاد په نسل وۀ. په نني دور کښې چې د افغان قومیت بنیاد په ژبه ږدي، د غور وړ خبره ده.
9. کتاب کښې د افغانانو تاریخي کردار څرګند کړے شوے دے چې مونږ ته ترې په شپاړسمه صدۍ کښې په افغانانو کښې د سیاسي بېدارۍ د شعور اندازه کېږي.
10. د دې کتاب نوم فارسۍ یا پښتو کښې د "اسرارِ افاغنه" په ځاے په عربۍ کښې "اسرار الافاغنه" دے چې ډېر معني خېز دے.
11. د ایشیاټک ریسرچ سوسایټۍ صدر ولیم جونز چې په دې تحریر کومه حاشیه کښلې ده، هغې کښې د "عذد راس" یا "عذرا" نبي حواله ورکولو کښې وئیلې شوي دي چې د بني اسرائیلو لس ورکې قبیلې اول خو غلامې او بیا د ایران مغربي حصو کښې ابادې کړې شوې. وروستو دغه خلق د اوږد سفر کولو نه پس بل ملک ته لاړل او دغه

ملک "هزاره جات" (موجوده افغانستان) دے چې عذرا نبي يې نامه "ازرارات" ليکلې ده. دا بيان د عبراني بائبل د کتاب دوېم عذد راس، باب 13، آيت 45 کښې درج دے، البته د وليم جونز په دې نوټ الفنستن تنقيد کړے دے.

د دې کتاب په مندرجاتو کښې څومره صداقت دے؟ ــ د دې د جاج اخستو د پاره ځان له بحث پکار دے ولې چې دا تلخيص شوے کتاب دومره مختصر دے چې ټولې خبرې پکښې ډېرې سرسري شوې دي. دا د افغانانو د بني اسرائيل کېدو په نظريه بحث کوي چې مونږ به پرې چرته ځان له کتاب کښې تفصيلي بحث کوو.




سعود الحسن روهيله

9 جنوري 2007ء

## د "اسرار الافاغنه" په حقله د خط ترجمه:

مکتوب له طرفه د عزت مآب هنري ونسیتارټ مرحوم په نامه د صدر نباغلیه!

څه موده وړاندې ما ته "اسرار الافاغنه" یا د افغانانو رازونه فارسي تلخیص په لاس راغے چې مولوي خیر الدین تیار کړے دے. اصل کتاب پښتو ژبه کښې حسین بن صابر بن خضر لیکلے دے چې د حضرت شاه قاسم سلیماني مرید وه او د دې زیرک مزار په چنارګړه کښې دے. زما شوق پیدا شه چې د دې (خلاصې) ترجمه وکړم. اګرچې د دې شروع د دې قبیلې نسب بیخي د غیر یقیني بیا نه کیږي او یوه داسې قیصه پکښې بیان شوې ده چې په هیڅ جوړ له هم ممکن او سنجیده تاریخ نه شي ګرځیدے. بیا هم زما خیال دے چې کله هم یو قوم د خپل اصل باره کښې څه معلومه شوې خبره بیانوي نو دا څیز داسې معاشرې له د دلچسپۍ باعث وي او دا پته ترې هم لګي چې هغوي حقیقتاً له کومه نسله دي. بې شکه د هر قوم د تاریخ ابتداء هم افسانوي وي او کله چې له هر چا د زیات روشن خیال قومونه د تهذیب او اهمیت هاغه درجې ته ورسي چې هغوي ته پکښې د خپلو کارنامو د یادولو نغوته کیږي او هغوي د دې د یادولو جوګه کیږي هم نو هغوي ته همیشه خپله ابتداء کښې هم داسې څیزونه په لاس ورځي چې د هغې ایجاد یا تصور ډیر بنه او ښکلے وي. داسې افسانې په اول کښې خو د روایاتو په شکل کښې مخې ته راځي او بیا په هم دغه شکل کښې هغه د راتلونکو نسلونو د پاره د خپل قوم د دروغژن شان و شوکت ذریعه وګرځي، هغوي بې په لیک کښې راولي او داسې ورته د تاریخ درجه حاصلیږي.

چونکې هر سلطنت د خپلو عناصرو مجموعه وي چې په خپله د انفرادي اتحادونو نه د مجموعي اتحاد په درجه کښې کشیف شوي وي، ځکه نو تاریخ د هغو معاملاتو مجموعه ده چې نه صرف مختلفو قبیلو سره تعلق

لري بلکې د يو قوم د افرادو سره هم متعلق وي چې دا تاريخ پرې بحث کوي.
دا شان هره خاصه واقعه د يو څيز خلاصه وي او داسې هغه نيمګړې هم وي، ځکه نو د دې قبيلو سره متعلق د ژوند حالات، طور طريقې، کارنامې بلکې د راېو بيانونه هم چې د يو عظيم سلطنت سره علاقه لري، هغه نۀ صرف خپله زړۀ راکښون لري، بلکې ډېر ګټه ور هم وي ولې چې هغه د دغې قوم پۀ تاريخ رڼا اچوي او د هغې وضاحت کوي.
د دې احساساتو پۀ تابع کښې زۀ د سوسايټۍ پۀ خدمت کښې د "افغانانو" د دې تلخيص شوي تاريخ د ترجمې جسارت کوم. دا يوه داسې قبيله ده چې پۀ مختلفو وختونو کښې هميشه راهسې د "فارس" او "هندوستان" سلطنتونو سره تړلې پاتې شوې ده. زۀ د دوي د ژبې يوه نمونه هم وړاندې کوم چې "پښتو" ورته وايي خو فارسۍ کښې دا ټکے "پشتو" وئيلے شي.
ښاغليه! زۀ پۀ ډېر احترام سره ستاسو لۀ ټولو زيات فرمانبردار او کَم تر ملازم يم.

هنري ونسيټارټ

کلکته، 3 مارچ 1784ء

د کتاب متن

# اسرارالافاغنه

## د افغانانو د یهودیانو لهٔ نسله کېدل



افغانان د خپلو روایاتو مطابق د ملک طالوت (ساول بادشاه) لهٔ باقیاتو څخه دي چې د ځینو د روایت تر مخه د یهودا ابنِ یعقوب لهٔ نسله دي او د ځینو نورو د روایتونو تر مخه د یوسف د ورور بن یامین لهٔ نسله دي.
د بني اسرائیلو او عمالیقیانو تر مینځه جنګ کښې عمالیقیان بریالي شو او هغوي یهودیان تباه او برباد کړل او تابوتِ سکینه یې هم یوړهٔ. دا تابوت هغوي د یهودیانو د دېوتا پهٔ خیال اور ته ګوزار کړهٔ خو اور ورته څهٔ خېپت و نهٔ رساوهٔ. بیا یې پهٔ تبرونو ماتولو خو پهٔ هغې کښې هم کامیاب نهٔ شو. کوم سړي هم چې د دې بې حرمتي وکړه، هغهٔ ته د خپل ناوړې حرکت سزا ملاو شوه. بیا یې پهٔ خپله عبادت ګاه کښې کېښوهٔ خو د هغوي ټولو دېوتاګانو ورته سجده وکړه. اخر یې پهٔ یوه غوا کېښوهٔ چې ځنګل ته یې وشړله.

کله چې اشموئيل نبي پاخبدۀ نو بني اسرائيلو ورته ووې چې "مونږ پۀ مکمله توګه د عماليقيانو تابع شوي يو او زمونږ څوک بادشاه نشته. مونږ لره يو بادشاه وټاکه چې د خدا ے د عظمت د پاره د جنګ جوګه وي."

اشموئيل وپوښتل چې "کۀ تاسو جنګ لره بوتللے شوئ نو جنګ کولو ته به تيار يئ؟" هغوي جواب ورکړۀ "پۀ مونږ څۀ چړق نازل شوے دے چې کافرانو سره به نۀ شو جنګېد ے؟ دې قوم خو مونږ لۀ خپل وطنه او اولاده جدا کړي يو."

پۀ دې جبرائيل فرښته راغله او د يوې معجزانه عصا ورکولو پۀ وخت يې ورته ووې،

"دا د خدا ے حکم د ے چې د کوم سړي قد د دې عصا برابر وي نو هغه به د اسرائيل بادشاه وي."

ملک طالوت هاغه غريب سړ ے وۀ چې د خلقو ګډې بزې (او غواګانې) به يې څرولې. يوه ورځ ترې اتفاقاً د چا غوا ورکه شوه. د هغې پۀ لټون کښې د ناکامۍ لۀ وجې سخت مايوسه شۀ او اشموئيل ته يې خواست وکړۀ چې "زما يوه غوا ورکه شوې ده او ما سره د هغې د مالک د مطمئن کولو هيڅ طريقه نشته. ما ته دعا وکړه چې دا ګرانه رابانديې اسانه شي."

اشموئيل اندازه وکړه چې د هغۀ قد ډېر دنګ د ے، د نامې پوښتنه يې ترې وکړه. هغۀ جواب ورکړۀ "طالوت"۔

اشموئيل ورته ووې "طالوته! دا عصا ځان پورې ونيسه چې جبرائيل فرښتې رالېږلې ده."

د هغۀ قد بېخي د عصا برابر وۀ. بيا اشموئيل ووې "خدا ے طالوت ستاسو بادشاه د ے."

بني اسرائيل جواب ورکړۀ "مونږ د خپل بادشاه نه ډېر عظيم يو، مونږ د عزت خاوندان يو او هغه خو يو غريب سړ ے د ے، زمونږ بادشاه څنګه کېد ے شي؟"

اشموئیل ورته ووې "هغوي ته دې دا معلومه وي چې خدای طالوت د هغوي بادشاه کړے دے او هغه به تابوتِ سکینه بیرته راوړي."
داسې هغهٔ (طالوت) تابوتِ سکینه بیرته راوړهٔ او هغوي خپل حکمران ومنلو.
کله چې طالوت ته سلطنت ملاو شهٔ نو هغهٔ د جالوت یا ګولیتهـ پهٔ علاقو قبضه وکړه. هغهٔ (جالوت) یو لوي فوځ تیار کړهٔ خو هغه د داود لهٔ لاسه ووژلے شهٔ. وروستو طالوت کافرانو سره پهٔ یو جنګ کښې شهید شهٔ او خدای داود د یهودیانو بادشاه کړهٔ.
د ملک طالوت دوه زامن و، د یو نوم "برکیا" او د بل نامه "ارمیا" وه چې د داود ملازمت یې کړے وهٔ او هغهٔ به دوي سره ډېره مینه کوله. هغهٔ دواړه کافرانو سره جنګ له ولېږل او د خدای پهٔ فضل دواړه کامیاب شول.
د برکیا زوے "افغان" وهٔ او د ارمیا زوے "اصبک" وهٔ. دا دواړه ځوانان د داود پهٔ عهد کښې لهٔ ټولو ممتاز وو او دواړه سلیمان پهٔ خپل ملازمت کښې واخستل. د افغان امتیاز دا وهٔ چې جسماني طاقت یې دومره زیات وهٔ چې د دېوانو او پېریانو پهٔ زړونو به یې هم هیبت راوستهٔ او اصبک د خپل علم پهٔ وجه ممتاز وهٔ.
افغان به اکثر پهٔ غرونو ګرځېدهٔ چرته چې د هغهٔ د وفات نه پس د هغهٔ اولاد ځان مستحکم کړهٔ. هغوي به ازاد ګرځېدل، ځان له یې قلاګانې جوړې کړې او کافران یې ختم کړل.
کله چې د مخلوقاتو منتخب حضرت محمدﷺ مبعوث شهٔ نو شهرت یې افغانانو ته هم راورسېدهٔ چې د خپلو سردارانو خالد او عبدالرشید (د ولید زامن) پهٔ مشرۍ کښې د یوې ډلې پهٔ شکل کښې ورغلل. نبي کریمﷺ یې شاندار استقبال وکړهٔ او وې فرمائیل "راځئ بادشاهانو یا ملوکانو!" — لهٔ هغې پس دې خلقو ته د "ملک" خطاب ورکړے شهٔ چې تر اوسه پرې نازېږي.
نبي کریمﷺ دوي له خپل عَلَم ورکړهٔ او وې فرمائیل چې:

"لهٔ دوي به دين ته تقويت رسي."
د خالد ډېر اولاد پيدا شهٔ چې کافرانو سره يې جنګونه وکړل. د نبي کريمﷺ پهٔ موجودګئ کښې يې ځانونه څرګند کړل. حضرت محمدﷺ دوي له ډېر عزت ورکړهٔ او دوي ته يې دعا وکړه.
د غزني د سلطان محمود پهٔ عهد کښې د خالد بن وليد د کورنۍ اتهٔ تنه سلطان له راغلل چې قالون، عالون، داود، يالوا، احمد، اوِن او غازي (دا نامې اووهٔ دي ـــ مترجم) نومونه يې وو. سلطان ترې ډېر خوشحاله شهٔ او هر يو يې د پوځ سپه سالار کړهٔ. دوي له يې وزارتونه ورکړهٔ اول د وکيل مطلق يا د نايب السلطنت عهدې يې ورکړې.
دا خلق چې به چرته هم تلل، هاغه ځاے به يې قبضه کولو، جوماتونه به يې جوړول او د بتانو مندرونه به يې ورانول. دوي پهٔ شمېر کښې ډېر زيات شو، دومره چې د محمود پوځ زياتره پهٔ افغانانو مشتمل وهٔ. کله چې هرهند د هندوستان طاقتور حکمران پهٔ غزنه حمله وکړه نو سلطان محمود د هغهٔ خلاق د خالد د اولاد شل زره سوارهٔ واستول. د ډېر سخت جنګ نه پس افغانانو حمله وکړه او لهٔ سحره تر غرمې ښهٔ پهٔ نره وجنګېدل، هرهند له يې ماتې ورکړه، ډېر کافران يې مړهٔ او ځينې يې مسلمانان کړل.
اوس افغانانو پهٔ غرونو پېښې ښخې کړې وې او ځينې د سلطان محمود پهٔ اجازت پهٔ ښهرونو کښې اباد شو. هغوي خان پهٔ څلورو ډلو کښې ووېشلو او دا متفقه ضابطه يې جوړه کړه چې:

1. اول خالصه طبقه کښې هاغه خلق شامل دي چې پلرونو او ميندې يې دواړه افغانان وي.
2. دوېمه ډله کښې هاغه خلق شامل دي چې پلرونه يې افغانان وي خو ميندې يې لهٔ نورو قامونو وي.
3. درېمه ډله هاغه ده چې ميندې يې پښتنې وي خو پلرونه يې لهٔ نورو قامونو وي.

4. او څلورمه ډله د هغو ښځو په اولاد مشتمله ده چې میاندې یې پښتنې دي خو پلرونه یا خاوندان یې له نورو قومونو دي.

او کوم خلق چې په دې څلورو ډلو کښې یوې سره هم تعلق نه لري، هغوي ته به "افغان" نه شي وئیلے.

د سلطان محمود د وفات نه پس هغوي په غرونو کښې سکونت اختیار کړه. وروستو چې کله د غزني یو سلطان شهاب الدین غوري دوه واره له هندوستانه ناکامه راغے نو وزیر یې خلق راجمع کړه او پوښتنه یې ترې وکړه چې د خالد په اولاد کښې څوک ژوندي شته؟

هغه ځواب کښې ووې چې ډېر پکښې غرونو کښې استوګنه لري او د ازادۍ ژوند تېروي او هلته ورسره خپل پوځ هم دے.

وزیر هغوي ته خواست وکړه چې غرونو ته ورشي او افغانان د یوې معاهدې تر مخه دلته راوستو باندې راضي کړي، ځکه چې هغوي د نبيﷺ د اصحابو له نسله دي. د غزني استوګنو یو سفارت تیار کړه او د ډېرو ډالو ټېلو سره یې د افغانانو ذهنونه جوړ کړل. افغانانو د سلطان په ملازمت کښې د داخلېدو وعده وکړه خو په دې شرط چې سلطان دې په خپله راشي او معاهده دې وکړي. سلطان ورپسې غرونو ته ورغے، ډېر قدر او عزت یې وکړه، ډېرې جامې جوړې او نورې تحفې یې ورکړې او هغوي سلطان له د دولس زره سورو نه علاوه ځینې پیاده پوځ هم ورکړه چې د سلطان د پوځ د هر اول په طور یې په دهلي قبضه وکړه. راې پتورا بادشاه، د هغه وزیران او امیران یې قتل کړل، ښهر یې تباه کړه او کافران یې بندیوان کړل. وروستو یې دغه کار په قنوج کښې هم وکړه.

سلطان د دغو ښهرونو په فتح ډېر خوشحاله شه او افغانان یې په اعزازاتو ونمانځل. وئیلے شي چې له هغه وخته دوي له د "پټهان" او "خان" خطابونه ورکړے شو. "پټهان" لفظ د هندي د فعل "پیټنا" یو دم حمله کولو نه وتے دے چې په دشمن د دوي په ډېره تېزۍ د حملو کولو کنایه ده. پښتنو د

هندوستان په تاریخ کښې ځان په ډېره شانداره طریقه ممتاز کړے دے او په ډېرو ډلو کښې تقسیم شوي دي.

د افاغنه په قبضه کښې د سلېمان غر او د هغې نواحیو ملک دے چې قندهار سره دے. دلته هغوي قلاګانې جوړې کړې. په دې قبیله کښې ډېر بادشاهان تېر شوي دي. د دهلي په تخت یې دا بادشاهان پاتې شوي دي: سلطان بهلول افغان لودهي، سلطان سکندر (لودهي)، سلطان ابراهیم (لودهي)، شېر شاه (سوري)، اسلام شاه (سوري) ــ په دېو کښې د غور دا بادشاهان هم شامل دي: سلېمان شاه ګرزني، بایزید شاه او قطب شاه. لۀ دې علاوه دې قوم مختلفو صوبو کښې ډېر فاتحین هم پېدا کړي دي.

افغانانو ته "سلېماني" هم وئیلې شي یا خو لۀ دې وجې چې دوي د سلېمان د یهودیانو د بادشاه رعیت وو یا لۀ دې وجې چې دوي په سلېمان غرۀ کښې استوګن وو.

(دلته د "اسرارالافاغنه" ترجمه ختمېږي، وړاندې د هنري ونسیتارټ بیان دے)

د ترجمې ختمولو نه پس زۀ صرف دومره اضافه کوم چې د افغانانو ملک چې د کابل یوه صوبه ده، په اصل کښې "روه" یادېږي او لۀ دې ځنې "روهیله" لفظ وتلے دے. دې کښې چې افغانانو کوم ښهر جوړ کړے دے، هغې ته "پېښور" یا "پشاور" وایي او اوس پوره د یوې ضلعې نامه ده. د "پټهانانو" یا "افغانانو" ډلې ډېرې زیاتې دي، دېو کښې خاص دا دي:

لودي، لوهاني، سور، سرواني، یوسفزي، بنګښ، دلازاک، خټک، یاسین، خلیل او بلوچي.

د "زي" مطلب اولاد او د "خېل" مطلب ډله ده. د افغانانو یوه خاص تذکره مرحوم حافظ رحمت خان لیکلې ده چې د روهیلیو یو سردار وۀ، شوقین قارئین ترې نور معلومات حاصلولے شي. هغوي مسلمانان دي، څۀ سنیان دي او ځنې د شیعه عقیدې سره تړلي دي. هغوي د خپلې قبیلې د شهرت او د خپل نسب په قدامت ډېر زیات ویاړي خو نور مسلمانان د دوي دعوې رد

کوي او دوي کوم نوے یا کم تره نسل گڼي، البته د تاریخ نه يې د کردار جاج اخستے شي۔ هغوي په خپله بهادرۍ خپل ځان انفرادي طور هم او اجتماعي طور هم د بادشاهانو په طور هم او د مددگار په طور هم ممتاز کړے دے۔ هغوي خپلو شهزادګانو له هم فتوحات کړي دي او غیر ملکیانو لره هم او همېشه د هغه پوخ بنیادي قوت ګڼلے شي چې دوي پکښې ملازمت کوي۔ دوي کښې څۀ خوبۍ او څنې خامۍ هم دي۔ څنې وخت غداري هم کوي، بلکې د يوې کم ترې درجې د قاتل کردار هم ادا کوي۔

## د صدر حاشیه:

د افغانانو دا تاریخ د یو اهم دریافت په لوري ځي۔ مونږ په "عذد راس" کښې دا لولو چې لس قبیلې د یو اوږد بیاباني سفر نه پس يو داسې ملک ته راغلې چې "ارضارات" نومېږي، چرته چې زمونږ په خیال اباد شوي دي۔ اوس د افغانانو په باره کښې غوره فارسي مؤرخین دا وئیلے شي چې هغوي د یهودیانو لۀ نسله دي۔ د دوي تر مینځه خپلو کښې هم دا روایت موجود دے او په دې هم زور راوړے شي چې د دوي خاندانونه د یهودیانو قبیائیلو په نامو پېژندے شي، حالانکې د اسلام راوړو نه پس ته يې د خپل اصلیت د پټولو ډېره هڅه وکړه۔
پښتو ژبه، چې يو لغت يې ما سره دے، کالیدي ژبې سره ډېر مماثلت لري او د دوي په قبضه کښې يوې لويې ضلعې ته هزاره یا هزارات وئیلې شي چې په ډېره اسانۍ په هغه لفظ کښې بدلېدے شي چې "عذد راس" استعمال کړے دے۔ زۀ د افغانانو د تاریخ او ادب په باره کښې د تحقیق زوردار سفارش کوم۔

## باسمه تعالیٰ




## د زړهٔ خبره

پښتانهٔ څوک دي؟ د دوي ټاټوبي کوم کوم پاتې شوي دي؟ لهٔ کومې راغلي دي او چرته مېشته شوي دي؟ ـــــــ

د دې سوالونو پهٔ جوابونو کښې ګڼو بهرنيو او خپلو کورنيو محققينو څېړنې کړې دي. چا يهوديان (بني اسرائيل) ګڼلي دي، چا يونانيان، چا آرين او چا پښتانهٔ هم پښتانهٔ ګڼلي دي. هر چا خپلې نظريې قابلِ قبول جوړولو د پاره د موجودو شهادتونو نه پاره اوازونه او جوازونه تراشلي دي. د "وېد" پکهت، پخت، پشت، "اوستا" کښې بخد، بخت او پشت او دا شان د يونان مؤرخينو او جغرافيه دانو پښتنو ته "پکهتين" يا "پکهتويس" او د دوي ټاټوبي ته "پکتيکا" او "پکتيکاس" ليکلي دي او قريب قريب ټولو مستشرقينو پهٔ علمي او سائنسي بنياد د تحقيق نه پس دا منلې ده چې پښتانهٔ د وېد "پکهت" او د يوناني تاريخ "پکهتويس" دي او دا قبيله 1400 قبل مسيح زړه ده چې پهٔ بلخ، باختر کښې بې استوګنه کوله. هېروډوټس

خپله زمانه 484 ق.م کښې د پښتنو نامه "پکهتین" لیکلې ده چې د اباسین او امو په غاړو ښځو اباد وو او د فارس، هند او چین د زوروړو تهذیبونو مینځ کښې بې خپل وجود او تهذیب ژوندے ساتلے دے. بطلیموس دوي په "پکهتین" او "پکهتان" یاد کړي دي. دۀ او سکایي لاکس خپله سفرنامه کښې د دوي سیمه "اریا" او "اریانه ویجا" په نامه یاده کړې ده. ډېر محققینو کښې د ځینو نامې ډېرې واضحې دي مثلاً پروفیسر کلاپروتهه، پروفیسر برنارډ ډورن، الفنسټن، میجر راورټي، هنري والټربیلیو، ډاکټر ټرومپ او ولیم هنري پښتانۀ د ژبې د تحقیقاتو په بنیاد، چې دا د ژند. اوستا او سنسکرت سره ډېره نزدې ده، "انډو ارین" ژبه ده، ځکه نو پښتانۀ هم په دغه اره ارین دي. د خپلو تحقیقونو په بنیاد ځینو مؤرخینو او محققینو د پښتنو/ افغانانو د وجود او تهذیب عمر 1900 ق.م ته رسېدلے منلے دے.
دلته پښتونخوا کښې زمونږ د ژبې او ادب عالمانو او مؤرخینو لکه قاضي عطاء الله، مولانا عبدالقادر، سید بهادر شاه ظفر کاکاخېل، روشن خان، دوست محمد خان کامل مومند، حسین بخش کوثر غوریاخېل، غني خان، اجمل خټک او سعدالله جان برق او نورو خپلو لیکلو تاریخونو او ځینې ادبي کتابونو کښې چا بني اسرائیل او چا بیا ارین ګڼلي دي.
د افغانستان عالمانو کښې پروفیسر عبدالحی حبیبي، احمد علي کهزاد، حبیب الله تږي، صدیق الله ریښتین او ځینو نورو پښتانۀ ارین یاد کړي دي او د دوي د پښتو ژبې رګ و ریښې بې د پخوانیو ژبو او کتابونو ژند، پاژند، اوستا او د سنسکرت په اړه اوستا، سنسکرت او هندي سره تړلې دي ځکه نو زیات تره محققین هم په دې خبره یوه خلۀ دي چې پښتانۀ ارین دي کۀ دلته پښتونخوا کښې دي کۀ افغانستان کښې، کۀ جنوبي پښتونخوا کښې او کۀ د وطن دننه په نورو صوبو کښې یا د وطن نه بهر په نورو وطنونو اباد دي ـ البته پریشان خټک صاحب وایي چې پښتانۀ پښتانۀ دي او کۀ

مونږ خپل کلاسيک ادب ته رجوع کوو او خوشحال بابا راخلو نو هغه بې د يعقوب د قوم او ټبر نه ګڼي:

پۀ ښايست باندې بې ختمه دا وېنا ده
چې پۀ اصل د يعقوب قوم و تبار دي

زمونږ استاد محترم قلندر مومند به دا خبره کوله چې تاريخ هسې هم افسانوي وي او لۀ ځانه پکښې ډېرې قيصې قطارې راجوړې شوې وي نو پۀ ځاے د دې چې مونږ خپلې رګ رېښې پۀ لادينو خلقو پورې تړو، ولې دې ځان د پېغمبرانو پۀ اولاد کښې شمار نۀ کړو. د هغوي خپل نظر پۀ خپل ځاے خو تحقيق پاخۀ دلايل او سندونه او ثبوتونه غواړي او کومو محققينو چې پۀ دې کښې خپل ځانونه کړولي دي، کلونه کلونه بې خپلو تحقيقي منصوبو ته دوام ورکړے دے، هغوي پۀ دې نتيجه رسېدلي دي چې پښتانۀ آريا دي.

د سعود الحسن روهيله دغه اردو ترجمه د هنري ونسيټارټ د انګرېزۍ تلخيص نه شوې ده خو د حسين ابن صابر ابن خضر نوم سره تړلې د "اسرار الافغانه" اصل مسوده ناپېد ده. پۀ ځينو حوالو "اسرار الافغانه" د اهميت وړ دے چې "د کتاب اهميت او خاصيت" تر عنوان لاندې بې ذکر شوے دے . دلته زۀ دې کتاب کښې د وړاندې شوې نظرې بادي النظر، د يو اهم تاريخي دستاويز پۀ حېث د پښتون تاريخ د طالب عالمانو د پاره د محفوظ کولو کوشش کوم.

**ډاکټر محمد زبير حسرت**
ډائرېکټر پښتونخوا مطالعاتي مرکز
باچاخان پوهنتون چارسده
2014/09/30ء

# Prof. Dr. MUHAMMAD ZUBAIR HASRAT

Curriculum Vitae
0345 930 9207
hdrzubair@ymail.com

## PERSONAL

| | |
|---|---|
| Name | Muhammad Zubair |
| Pen Name | Dr. Muhammad Zubair Hasrat |
| Father Name | Syed-ul-Konain |
| D/O/Birth | 14 Aug' 1962 |
| P/O/Birth | Mohalla Bari Cham, Hoti, Mardan |
| Marital status | Married |
| Address | Daudzai kandey, Tehkal payan, Peshawar |

## ACADEMIC QUALIFICATION

- Ph.D. in Pashto (A critical study of Qalandar Moomand)
  *2008 University of Peshawar*
- M.Phil (Dost Muhammad Khan Kamil Moomand: Life & works)
  *1997 University of Peshawar*
- M.A (Pashto) — *1986 University of Peshawar*
- B.A — *1984 University of Peshawar*
- F.A — *1982 BISE, Peshawar*
- SSC (Humanities Group) — *1978 BISE, Peshawar*

## CAREER HISTORY

| | | |
|---|---|---|
| 1985 | Drawing Master | G.M.S Jalsai, Sawabi |
| 1990 | Lecturer in Pashto | G.D.C Lahor, Sawabi |
| 1997 | Assistant Professor | G.D.C Turu, Mardan |
| 2008 | Associate Professor | G.D.C Lahor, Sawabi |
| 2008 | Subject Specialist (Pashto) | Khyber Pakhtunkhwa Text Book Board, Peshawar |
| 2010 | Principal | G.D.C Yar Hussain, Sawabi |
| 2012 | Subject Specialist (Pashto) | Khyber Pakhtunkhwa Text Book Board, Peshawar |
| 2013 | Director Pakhtunkhwa Study Centre | Bacha Khan University, Charsadda |

# PUBLICATIONS

| | | |
|---|---|---|
| 1. | Poetry | **Da Khyaal pa' seuree** |
| 2. | Poetry | **Zamaa aw Staa Sandarey** |
| 3. | Poetry | **Ghazal Zaar** |
| 4. | Poetry | **Zjwandi Lafzuna** |
| 5. | Biography | **Hasrat: Zjwand aw Fun** |
| 6. | Reportage | **La' Mardana tar Mardana** |
| 7. | Compilation | **Dr. Amin: yawa Mutaale'a** |
| 8. | Research | **Aulasi Adabi Jirga** |
| 9. | Research | **Da Khushal Baba Taarik Goee** |
| 10. | Compilation | **Warbaluna che samsor shi** |
| 11. | Research | **da Shamshad Khaasa ganrha** |
| 12. | Research | **da Qalb-ul-Seer Shaaeri** |
| 13. | Research | **Khushal aw Rokhaanyaan** |
| 14. | Sketches | **Naqshoona** |
| 15. | Criticism | **Naqsh** (A detail study of Pashto Afsaana) |
| 16. | Translation | **Da Tahqeeq Fun** |
| 17. | Short stories | **Qissa Khaana** |
| 18. | Short stories | **Da Zjwandun khaarya** |
| 19. | Poetry | **Kalaam** |
| 20. | Poetry | **Elhaam** |
| 21. | Poetry | **Zama Ghazaluna** |
| 22. | Poetry | **da Gul pa' Katoree ke** |
| 23. | Poetry | **Yaqeen** |
| 24. | Research | **Adabi Muqaddimey Vol. I** |
| 25. | Research | **Adabi Muqaddimey Vol. II** |
| 26. | Research | **Adabi Muqaddimey** (Dost Muhammad Kamil Moomand) |
| 27. | Research | **Qalandar Moomand** |
| 28. | Research | **Qalandar Moomand** (Zindagi, Fun aur Shakhsiyat) |
| 29. | Compilation | **da Sabawun ranrhaayee** (Qalandar Moomand) |
| 30. | Research | **Wali Khan**: Zjwand, Shakhsiyat aw Syaasat |
| 31. | Compilation | **Saazuna Awaazuna** (Amir Ghulam Sadiq's Filmi songs) |
| 32. | Compilation | **Latoon** (Ghani Khan) |
| 33. | Compilation | **Sandareez Shafaquna** (Saif-ur-Rahman Saleem) |
| 34. | Compilation | **da Salgayo pa' Shor ke** (Khan Bahadar Hasrat) |
| 35. | Research | **Dost Muhammad Khan Kamil Moomand**: Zjwand aw Adabi Khidmaat |
| 36. | Research | **Etmaam-e-Hujjat** |
| 37. | Compilation | **Seend** (Markazi Pukhto Adabi Jirga, Nowkhaar) |
| 38. | Reportage | **Nandaarey** |
| 39. | Reportages | **Roodaaduna** (Markazi Pukhto Adabi Jirga, Nowkhaar) |
| 40. | Research | **Laaluna Malghalarey** (Sayings of Bacha Khan) |
| 41. | Drama | **Khudaai Khidmatgaar** (Fazal Karim) |
| 42. | Compilation | **Khushal Khan Khattak** (Dost Muhammad Khan Kamil Moomand) |
| 43. | Compilation | **Rahman Baba** (Dost Muhammad Khan Kamil Moomand) |
| 44. | Research | **da Rahman Baba Fikri Maktab** |
| 45. | Research | **Khudaai Khidmatgaar** (Fazl-ul-Rahim Saaqi) |
| 46. | Drama | **Dard** (Amir Nawaz Khn Jalya) |
| 47. | Compilation | da Bacha Khan Kifaayat shu'aari (Fazl-ul-Rahim Saaqi) |
| 48. | Compilation | **Da Sabar Jang** (Fazl-ul-Rahim Saaqi) |
| 49. | Compilation | **Drey Qessey** (Fazl-ur-Rahim Saaqi) |
| 50. | Research | da **QASEEDA BURDA** manzoomey aw mansoorey tarjumey |
| 51. | Compilation | **Kalpaanrai** (Maraka Publications, Mardan) |
| 52. | Compilation | **Maraka** (13 volumes) |

53. Compilation — **da Akhun Gadaa Muntakhibaat**
54. Research — **Hamid Baba aw Dur aw Marjaan**
55. Research — **Qalb-ul-Seer** (Gohar Khan Kattak)
56. Research — **da Rostee Sparlee Nargas** -- Ajmal Khattak
57. Research — **Pukhto aw Norey Afsaaney** – Ajmal Khattak
58. Research — da **Makhzan-ul-Islam** Muqaddima
59. Research — **Makhzan-ul-Islam** (Akhun Darveza)
60. Compilation — **Qalandar Moomand** (Zjwand, Fun aw Shakhsiyat)
61. Research — **Mast Malang Ghani Khan**
62. Compilation — **Latoon pasey Latoon** (by Ghani Khan)
63. Research — **Tamaashey** (Evolution of Pashto Drama, 1930-1970)
64. Translation — **Asraar-ul- Afaaghina**

## Articles

More than 100 research articles on different topics published in the newspapers and research journals.



پښتون په اصل، سړبني دے
یا غورغشتي دے، یا بیټني دے
لودي، غلجي دے، د پټي لۀ لوره
په سړبن پورې، بیا کرلاڼي دے

خوشحال خان خټک (کلیات 736 مخ)

